# د ځوان نسل فکری روزنه

**ځوانان د غرب تر فکري يرغل لاندې**
**(بيا ارتداد دی خو ابوبکر رضي الله عنه نشته!)**
**د اسلامي نړۍ ستر مفکر او مبارز شخصيت مقاله**

**ليکوال: امام سيد ابوالحسن على ندوی رحمه الله**
**ژباړه: ابومعاذ**

# د ژباړن سريزه

**الحمدلله وکفی والصلاة والسلام علی سید الانبیاء محمد وعلی اله واصحابه اجمعین**

**په کومه نړۍ کې چې ژوند کوو، د حق او باطل د جګړو ډګر دی او د ادم علیه السلام له پیدایښت څخه تر ننه پورې د حق او باطل همدا جګړه روانه ده، د حزب الرحمن او حزب الشیطان دغه جګړه یوه ډېره اوږده او تاریخي پس منظر لري، چې د یوې زمانې او ځای پورې خاص نه دی، په هر ځای او هر وخت کې په مختلفو طریقو، شکلونو، لارو چارو او وسایلو تر ننه پورې روانه ده او تر قیامته به روان وي، مګر په هره زمانه کې د جګړې شکل او طرز عمل بدلیږي.**

**که چېرې د تاریخ پاڼو ته ځیر شوو، نو ټول حقایق به راڅرګند شي، کله ظالمو، جابرو، باغي او طاغي پادشاهانو خلک د باطلې شرکي او کفري عقیدو منلو ته مجبوروي او کله هم د شیطان لښکریانو د وژونکو، ذروي او کیمیاوي اسلحو په واسطه ملتونه او قومونه تر یرغل لاندې نیسي او خپل باطل او شیطاني عقیدی پر هغوي تحمیلوي او د نه منلو په صورت کې یې ژوندي تر خاورې لاندې ښخوي.**

**له پېړیو راهیسي، د ابلیس لښکریان همدې ټکي ته متوجه وو، چې یو ملت له حقې عقیدې نه د جګړو او وژنو له لارې اړولو سره د هغوي دښمني نور هم زیاتوي او په مقابل کې یې پاڅون کولو ته هڅوي، بلکه مسلمانان نور هم په خپلو عقیدو کلکوي.**

**له همدې امله (نوی استعمار) د (زوړ استعمار) ځای ونیوه او ګرمه جګړه په سړه جګړه بدله شوه، پخوانې تګلارې، فکرونه، پلانونه او پرګرامونه بدل شول او یوه نوی بڼه یې غوره کړه، چې دا یې تر ټولو خطرناکه او دردونکی دور پیل شو، دغه نوی ارتداد هر کور، هر کلي، هر دفتر او هر فرد ته ورسید.**

**قاضي اکبر اله ابادي د هند له مشهورو شاعرانو او د غربي تمدن له سختو دښمنانو او انتقادیانو څخه دی، هغه په خپل یو انتقادي شعر کې وایي:**

**(که فرعون د بني اسرائیلو د ماشومانو وژلو پر ځای تربیتي او تعلیمي مرکزونه ودان کړی وای او د خپلو فکري انحرافاتو له لارې د هغوي ذهنونه وینځلی وای، کیدای شي، داسې بدنامه شوی نه و، مګر داسې څوک نه و، چې هغې بیچاره ته دا فکر ورکړی وای).**

هو درنو لوستونکو! د اسلام د دښمنانو د همدې کفري تبليغاتو له امله ځوانان متاثره شول او له خپلو اسلامي قوانينو څخه يې بغاوت وکړ، په اکثرو اسلامي هيوادونو کې دغه پټ بشر دښمنه شيطاني ډله د خپلو عصري او ارتباطي وسايلو لکه تلويزيون، راديو، مطبوعات، رسنيو، فکر زبيښونکو کتابونو او سينماګانو له لارې ځوانان له اسلام څخه بيګانه او بالمقابل بيرته يې د اسلام او قران دښمنې لپاره راپاڅول، تر دې چې ځينو ناپوهو، جاهلو او د غرب په اشارو نڅاګرو ځوانانو په ښکاره وويل: چې زموږ د وروسته پاتې والي لوی لامل قران وو، چې موږ يې له متمدني نړۍ نه وروسته کړی يو (العياذبالله).

په ډير افسوس دغه لويه دردونکی او بوږنونکی پيښه په کراره د کورنيو، مشرانو، پوهانو او علماوؤ د بې باکې او عدم مسؤليت له امله په خلکو کې ريښې وزغلولې او فکرونه يې يرغمال کړل، ددې خبرې د لاثبوت لپاره لوی دليل د اسلامي هيوادونو پر چوکيو ناستو فاسده، ناپوهه او غرب ځپلي واکمنان او مشران دي، چې د مسلمانانو په کورنيو کې زيږيدلي دي او ظاهرا نومونه هم پرې اسلامي ايښودل شوي دي، مګر ستونزه داده چې دوي د غربي افکارو، منحرفو او بې دينو مکاتبو او نصابونو په غيږه کې روزل شوي دي، هيڅکله د خير او ښيګڼې تمه ترې نشي کيدای، ددوي ټول کوښښونه، پروګرامونه او پلانونه د مسلمانانو کمزوري کول او د اسلامي او قراني تعليماتو لمنځه وړل دي.

ايا تاسې فکر کړی دی، چې مصطفی کمال، داؤد خان، نورمحمد ترکي، حفيظ الله امين، محمد رضا پهلوي ايران، نورالدين کيانوري او داسې نور څوک وو؟ کوم جنايات يې په اسلامي هيوادونو کې ترسره کړل؟ د چا لخوا راوستل شوي وو؟ ايا دوي د مسلمانو ميندو په شيدو او د مسلمانانو پلارانو په سرمايه رالوی شوي نه وو؟! نو بيا ولې د اسلام او مسلمانانو تر ټولو لوی دښمنان شول او مسلمه امت ته تر ټولو لوی ګوزارونه همدوي ورکړل؟

ربښتيا هم چې دا يو نوی ارتداد وو، چې زمونږ اکثره ناپوهه او له اسلامه لرې پاتې شوي ځوانان يې له خپلې ستونې تير کړل، نو بيا ددې انحراف او ارتداد وجې، عوامل او د مخنيوي لارې چارې په کوم ځای کې ولټوو او څرنګه په مقابل کې يې مبارزه وکړو؟

دغه کوچنې او محدودې ورقې مګر په معنوي لحاظ لوی کتاب چې ستاسې په لاسونو کې دی، د اسلامي نړۍ د ستر مفکر، معاصر مبارز او ليکوال په قلم ليکل

شوي مقاله ده، دا له هغو سلګونو مقالو څخه ده، چې استاد (سيد ابوالحسن علي ندوي رحمه الله) په ډير جالب انداز سره ددې دردونکی ارتدادي حالت په اړه يې ليکلي او په لنډه توګه يې د خلاصون او مخنيوي لارې چارې هم راڅرګندی کړې دی.

همدارنګه موږ پوهيږو، چې ننې استعماري او استکباري نړۍ د ځوانانو فکرونه څومره مخدوش او مسموم کړي او د اسلام په اړه يې څومره کرکه زياته کړې او څومره يې پر افکارو او ذهنونو واکمني لري؟ د ځوانانو او ديني علماؤ ترمنځ يې څومره فاصله پيدا کړی او هغوي يې له اسلامي مراکزو، جوماتونو او ټولنو څخه لرې کړی او دين يې ورته کمرنګه ښکاره کړې، خپلو دی شومو اهدافو ته د رسيدو لپاره ځوانان په اخلاقي فساد، مبتذل او عرياني خپرونو، فحاشيو، مخدره موادو او جناياتو کې اخته کوي، په همدې ترتيب له اسلام سره يې اړيکې پرې کوي او په خپله غيږه کې تر خپل تربيت او نصاب لاندې يې په خپله خوښه روزي او بيا يې د متفکرينو، روڼ اندو او پوهانو په نومونو يې اسلامي هيوادونو ته مهر شوي راستوي او زموږ هغه قيمتي او له کلونو راهيسي کرل شوي نيالګي چې په راتلونکی لنډه موده کې يې په ميوو نيولو پيل کاوه، د غرب په غيږه کې پريوت، اوس زما ورور، زما ځوي او زما هيواد وال زما پر خلاف کاروي، په هر ځای کې مسلمانان د همدوي په لاس ټکول کيږي او ځپل کيږي، د غرب همدا روزل شوي توکم، په اسلامي هيوادونو کې هغه نارواوی، ظلمونه او جنايات وکړل، چې قلم يې په ليکلو او ژبه يې په ويلو شرميږي، تر ټولو وړاندې دغه ارتداد چې له خپل کور او کلي څخه ورک نشي او دی مجرمينو ته عبرتناکه سزا ورنکړل شي دا لړۍ به همداسې روانه وي، الله مه کړه ټوله اسلامي نړۍ به راګير کړي، چې بيا به يې هيڅ د خلاصون لاره نه وي.

له همدې امله ټولو علماؤ، پوهانو او دردمنو مسلمانانو ته وايم، اوس هم د مخنيوي او خلاصون لارې شته، لازمه ده چې د غرب استعماري او استکباري لوري هر وخت تر دقيقې څارنې او مطالعې لاندې ونيسو او په مقابل کې يې پاڅون وکړو او پريکنده اعلان وکړو، چې (انا برآ منکم و مما تعبدون من دون الله کفرنا بکم و بدآ بيننا و بينکم العداوة والبغضاء ابدا حتی تؤمنوا بالله وحده)

موږ له تاسو او له هغو خدايانو څخه چې تاسې يې له الله تعالی څخه پرته عبادت کوئ بيزاره يو، موږ په تاسې کفر (انکار) کړی، زمونږ او تاسې تر منځ دښمني

او بغض د تل لپاره شروع شوه، (دا دښمني به تر هغه روانه وي) چې تاسې په یو الله عز وجل ایمان راوړئ.

کوم غفلت چې وړاندې له موږ څخه شوی پر هغې باید پښېمانه او سر له ننه لاس په کار شوو او زموږ اسلامي دعوتګرانو ته لازمه ده، چې بیرته خپل ډګر ته راووځي او شپه ورځ په دې کوښښ وکړو، چې څنګه خپل مخکینی برم او شوکت لاسته راوړو؟ او یو ځل بیا په تل ابیض، اقصی، اندلس او قرطبې باندې خپل بیرغونه رپانده کړو، د روم، فارس او اروپا نړیوال ترونونه مات او سازمانونه یې له خاورو سره خاورې کړو، غرب او د غرب لاسپوڅو ته دا ثابته کړو، چې اوس هم د صلاح الدین ایوبي، طارق بن زیاد، محمد بن قاسم او سلطان محمد الفاتح وینې په مونږ کې چلیږي او هماغه احساس مو په زړه کې دي، هیڅکله به د هغوي تورې زنګ وهلو پرینږدو، الحمدلله اوس هم د هغوي له تورو وینې څاڅي او مونږ ته دا الهام راکوي، چې پاڅه او د خپلو نیکونو په پل باندې قدم کیږده او نړۍ د ځان تابع کړه.

په دې لاره کې به یواځې مرسته له خپل ذوالجلال رب څخه غواړئ، ځکه هغه یواځینی ذات دی، چې خپلو مخلصو، ایماندارو او متقي بندګانو سره مرسته کوي او هماغه ذات رحیم، کریم او مهربانه دی.

دغه مقاله د اسلامي پوهانو پر ذهنونو ژور تاثیر کړی او د هغوي فکرونه یې ددې حالاتو په وړاندې راپارولې دی، د نوی نسل د فکرونو د راژوندي کولو په لاره کې ډیر مؤثر تمام شوی دی، اګر که دغه رساله مخکې ډیرو ژبو ته ژباړل شوی دی، نو دا چې دغه رساله ډیره مهمه او اوسنیو حالاتو سره سم لیکل شوی دی، نو موږ هم وغوښتل تر څو خپل ځوان نسل چې د غرب د بې شمیرو پلانونو او تبلیغاتو له امله یې ذهنونه کنګل شوي دي، دغه رساله وړاندې کړه او خپله مورنۍ ژبې ته مو وژباړله تر څو ګټه یې ټولو ته عامه شي او ځان له دې ارتداده خلاص کړي.

په اخره کې یادونه کوم، چې ګرانو لوستونکیو! که په دې کتاب کې کومه تیروتنه مو تر سترګو شوه، هغه به زما عاجز لخوا وي، لیکوال ترې پاک دی.

په اخره کې ددې کتاب محترم لیکوال، ژباړن، خپرونکي او نورو مسلمانانو ته رسوونکی لپاره د الله عزوجل له دربار څخه په دنیا او اخرت کې د نیکمرغیو، بریالیتوبونو او خوشحالیو غوښتونکی یم.

جزاکم الله خیرا احسن الجزاء

ستاسي ورور ابومعاذ

د ژباړی پای، ۱٤۳٦ هجري کال

د رمضان المبارک میاشت لسمه.

خراسان

## د لیکوال سریزه

کومه مقاله چې ستاسي په لاس کې ده، د لومړي ځل لپاره د (ردة جدیدة) (نوی ارتداد) تر نامه لاندې په (المسلمون) مجله کې خپره شوه، چې بیا د (ردة ولا ابابکر لها) (هماغه ارتداد دی خو ابوبکر ورته نشته) تر عنوان لاندې ډیر زیات چاپ او خپور شو او د ډیرو ورځپاڼو او مجلو ډیرې پاڼې همدې موضوع ته ځانګړې شوي وو او د لوستونکې پام یې ځانته را واړوه او د هغوي د توجه وړ وګرځید.
دغه رساله زما له ډیرو خپاره شویو لیکنو څخه دی، کیدای شي چې ددې ډیر چاپیدلو او د ډیرو نیکانو او د اسلامي نړی پوهانو د پام وړ ګرځیدو وجه به دا وي، چې دغه مقاله په حقیقت کې د اسلامي نړۍ حالات او په ځانګړی توګه نوي نسل تر څیرنې او تحقیق لاندې نیولې دی او د هغوي د کمزورتیا او وروسته پاتې کیدو اصلي لاملونه راڅیړلي او ښکاره کړي دي، دا سمه ده چې که لیکنې همداسي ښې ولري، نو واقعا چې د زړونو او فکرونو د استقبال وړ ګرځي، ډیرې پوه او فکري خلک ورته ښه راغلاست وایي، ګواکې له وړاندې ورته انتظار کاوه او اوس یو داسې څیز لاسته راوړې دی، چې د ددوي د احساساتو او عواطفو ترجماني کوي
له هر څه وړاندې باید یادونه وکړو، چې ددې فکر بنسټګر په کراچی کې (داکتر رفیع الدین) د (اقبال اکاډمې) مشر و،
ښاغلی رفیع الدین پخپل کتاب (قران او عصري علوم) کې نوی او بې مثاله ارتداد ته اشاره کړی، چې نوی او ځوان نسل ته لوی خطر دی او دوي د غرب دې فکري یرغل په وړاندې له ماتې سره مخ دي. دغه نوی ارتداد له ټولو هغو وړاندنیو

عقيدوي ارتدادونو څخه ډير توپير لري او دومره پراخه او وسيع دی، چې د اسلام او مسلمانانو راتلونکی ته هم ننګوونکی دی.

د داکتر رفيع الدين دغه څرګندوني مونږ ته يو نوی فکر راکړ، چې په پايله کې يې دی ليکنې ته اړ کړم، ددې مقالې په ليکلو کې مې دومره زيار نه دی ګاللی، څه چې مې په ذهن کې و، هغه مې قلم ته وسپاره، ددې مقالې له خپريدو سره ځينې مخلص ملګري غوښتنه وکړه، تر څو د کتابونو د خپرولو او چاپولو لپاره يو علمي مرکز پررانيزي، ترڅو له دې لارې ددې مقالې غږ ته مثبت ځواب ووايي، د همدې فکر په اساس د هند په لکهنو ښار کې په ۱۳۷۸هـ کال کې (د اسلامي تحقيقاتو او خپرونو) په نوم يو مرکز تاسيس شو، چې يواځينې موخه يې په اسانه او روانه ژبه د هغو اسلامي او علمي مطالبو ليکل او وړاندې کول و، چې ځوان نسل او روښنفکره وګړي خپل فکري مشکلات پرې حل کړي او هغوي د غرب د خطرناکو زهرجنو څپو په مقابل کې ساتنه وکړي.

د الله تعالی ډير زيات شکر اداء کوم، چې ددې علمي ادارې له لارې په عربي، اردو، انګليسي او هندي ژبو ډير زيات علمي کتابونه او مقالې خپاره شوي دي، چې له هغوي څخه ډير په زړه پورې اثار په پښتو فارسي او ترکي ژبو هم ژباړل شوي دي، تر څو د هری ژبې مسلمانان ترې ګټه پورته کړي، چې اوس ددې مقالې نوی ګڼه د محترمو لوستونکو خدمت ته وړاندې کيږي، ليکوال اجازه ورکوي، چې دا کتاب د نړۍ په هره برخه او هره ژبه کې خپور شي او ټول مسلمانان ترې برخمن.

(فرب مبلغ اوعی من سامع).

سيد ابوالحسن علي حسيني الندوي

د ندوة العلماء د نشرياتو او تحقيقاتو مرکز

۱۳۹٤رجب ۱۷ هند

**نوي ارتداد**

اسلامي تاریخ د ارتداد مختلفې پېښې او واقعات لیدلي، چې تر ټولو لوی او دردونکی پېښه یې د رسول الله صلی الله علیه وسلم له وفات سره جوخت د ځینو عربی قبیلو ارتداد وو، چې د خلیفة الرسول ابوبکر صدیق رضي الله عنه په فولادي عزم او ایماني ولولو یې په لومړیو ورځو کې له سر پورته کولو سره لمنځه ولاړ.

دویمه پېښه په اسپانیا (اندلس) کې رامنځته شو، وروسته له هغې چې مسلمانان له خپلو کورونو څخه وویستل شول او ډیر زیات خلک عیسویت دین منلو ته اړ ویستل شول، له همدې امله کوم هیوادونه چې د مسیحیت تر واک لاندې و، د عیسوي دعوتګرو لپاره د تبلیغاتو او فعالیتونو ته لاره پرانیسته، له دې پرته داسې پېښې هم شوي، چې ځینې ناپوهه او بې همته مسلمانان په هندوستان کې له دین اسلام نه واوښتل او کفر یې غوره کړ، مګر داسې پېښې ډیرې کمې رامنځته شوي دي، که په اسپانیه کې دا ارتداد پر ځای پریږدو، نو د تاریخ پوهانو له څرګندونو څخه دا دعوه کولای شو، چې اسلامي تاریخ داسې یو ارتداد له دې وړاندې لیدلی نه دی.

## د دې ارتدادونو په وړاندې اسلامي ټولنه څه عکس العمل وښودل؟

هر کله چې داسې پېښې رامنځته کیدلې، نو د مسلمانانو لخوا له دوه ډول عکس العمل سره مخ کیده.

۱: د نفرت او بیزارۍ څرګندول.

۲ـ د اړیکو پرې کول:

څوک چې له دین څخه اوښته، مسلمانانو به یې ډیر سخت وغندل او له هغه څخه به یې برائت او بیزارۍ څرګندوله، چې له دې سره به پر هغه د ژوند کړۍ راتنګه شوه او د ټولو خپلوانو اړیکې به ورسره پرې شوی، ګواکې د ارتداد معنی دا وه، چې نوموړی سړی له یوی ټولنې څخه بلې ټولنې اوړیدلی، نو ځکه د هغه کورنۍ له مرتد سره ملګرتوب، خپلوي او د وراثت ټولې اړیکې به یې ورسره پرې کولی، هر کله به چې د ارتدار لړۍ زیاتیده، نو د دواړه مذاهبو د پیروانو ترمنځ نښتې او جګړې هم رامنځته کیدی او په مسلمانانو کې د مبارزې او مقاومت روحیه راژوندي کیده، کله چې په ځینو اسلامي هیوادونو کې داسې پیښې کیدی، نو د هغه هیواد علماء، لیکوالان او دعوتګران به د مبارزی ډګر راوړاندی شول، د هغې پېښې عوامل به یې د اسلام د اصولو برابر وڅېړل او د هغه کس د مجازاتو غوښتنه به یې وکړه، نو له دې لارې به د ارتداد مخه یې ونیول.

اسلامي ټولنه د ارتداد له دې پېښو سره ډیر زیانمن کېده، داسې برېښیده چې د بغض او غوسې څپې د اسلامي ټولنې بنسټونه او اساسات خوزولې دی، پر دې

حالاتو نه يواځې د فکر او پوهې خاوندان ډېر غمجن وو، بلکې عام مسلمانان هم له دې ناخوالو څخه زوريدل.
هو! دا و ددې پېښو په وړاندې د اسلامي ټولنو او عامو مسلمانانو غبرګون، چې ټول مسلمانان يې دردولي وو، په داسې حال کې چې د ارتداد پيښې په عمومي توګه دومره زيات نه وو، چې د خلکو پر ژوند باندې مستقيما اغيزې وکړي، بلکې کله کله به رامنځته کيده.
په ډېر افسوس سره بايد ووايو، چې اسلامي نړۍ په دې وروستيو کلونو کې نسبتا يو لوی ارتداد سره مخ شو، چې له ټولو وړاندنيو ارتدادي حرکتونو څخه يې ځاری نه ليدل کيده، د يوه ورانوونکی طوفان په څېر راڅرګند شوی وو، داسې ډېر لړ ځايونه او کورونه پاتې وو، چې له دې دردونکی حالت څخه په امن کې پاتې وي او دا وژونکی زهر ورسيدلې نه وي، ددې ارتدادي يرغل تر شا د اروپا سياسي او فرهنګي فعاليت ډېر په زور او ځوګ سره په اسلامي هيوادونو کې راڅرګند شو او خپل ټول دعوتي پروګرامونه، مؤسسات او وسايل په کار واچوه، چې دغه ارتداد د رسول الله صلی الله عليه وسلم له وخت څخه تر ننه پورې يو بې ځارې او لوی ارتداد دی.

## د اسلامي شريعت په رڼا کې د ارتداد معنی

د ارتداد معنی داده چې يو مسلمان له خپل اصلی دين څخه بل دين ته واړوي، يا د يوی عقيدې پر ځای بله عقيده خپله کړي او يا په بل عبارت سره، ارتداد يعنی د رسول الله صلی الله عليه وسلم له راوړي دين څخه انکار کول.
مخکې که څوک مرتد کيده، نو ښکاره به د رسول الله صلی الله عليه وسلم له رسالت څخه انکار کاوه او د يهوديت يا عيسويت دين به يې ومانه او يا پوره الحاد او لاديني به يې اختيار کړ او له ټولو اسماني دينونو څخه به يې انکار وکړ، که چيرې مسيحيت يې ومانه، نو کليسا يا (هيکل) ته به ننوت او که برهمني دين ته معتقد کيده، نو د بتانو منجاوري به يې کاوه، په هر حال ددوي ادتدار به له هيچا پټ نه پاتې کيده، بلکې ټولو مسلمانانو ته ښکاره معلوم و، چې نوموړی کس له اسلام څخه وتلې او کافر شوی دی، نو ځکه مسلمانان له دې پيښو څخه په خبرتيا له هغه سره اړيکې او خپلولي پرې کولې، مګر ډيرې کمې پيښې به د چا ارتداد له خلکو پټ پاتې شو، مګر نن ورځ نه کليسا ته ورځي نه هم بتانو سجدی کوی او په ارتداد کې اخته شوي دي.

## معاصر ارتداد (اوسني مرتدين)

اروپا يو ډول نوی فلسفه او دين ختيځ ته را وارد کړ، چې بنسټ يې له الله تعالی او ماوراء الطبيعت اشياؤ څخه پر انکار کولو ولاړ و او له هغه فلسفي چې د اسلام له اساسي اصولو څخه و لکه: وحی، نبوت، اخرت او د نړۍ له ستر پيداکوونکی څخه انکار وو او ورپسې مختلف نظريات په مختلفو موضوعګانو لکه: د ژوند او چاپيريال پيژندنه، اخلاق او ارواه پوهنه، فرهنګ، کلتور، سياست، اقتصاد او نورو

نظرياتو په ډول يې را وړاندې کړل، چې ټول په يوه ټکي راڅرخيده، چې انسان يې يواځې د مادياتو له نظره تر بحث او څېړنې لاندې نيول او هره څرګندونه چې انسان پورې به اړه درلوده، نو مادي توجې به ترې کاوه.
دغه سيکولر افکار او نظريات له خپريدو سره سم د مشرق اسلامي هيوادونو فکرونه تر يرغل او تاړاک لاندې راوستل، چې له دې زهرجنو افکارو او ظاهري ښايست له امله په اسلامي ټولنه کې يې ننوتل، چې يو ډول نوي فکرونه، پروګرامونه او پروسې يې رامنځته کړی او په ډيرو مختلفو او پرمختللو وسايلو سره يې خپلې شومې موخې او په زهرو لړلي نظريات په خلکو کې وشيندل.
نو له همدې امله باسواده او روڼ انده خلک چې د علم او پوهې په ګاڼه سمبال خلک وو، د غرب تر فکري يرغل لاندې راغلل او د ملګرتوب لاس يې ور وړاندی کړ او د هغوي په مفکورو (ايډيالوژيو) يې داسې ايمان راوړ، لکه يو مسلمان چې پر اسلام او يا يو عيسوي چې پر مسيحيت يې لري.
دغه ډله په دې افکارو دومره معتقد دي، چې په دې لاره کې د سرونو قربانۍ ته هم چمتو دي او خپل دغه لاره يوه سپيڅلې او مقدسه لاره بولي، خپل رهبران او ملګري په وياړ سره لمانځي او د هغوي ستاينه کوي او په خپلو ليکنو کې خلک دې ته رادعوت کوي او څوک چې ددوي مخالف وي، هغوي به يې سپک، ناپوهه او له تمدن نه وروسته پاتې بلل، يواځې خپل د فکر او لاره تمدن او علانيت لاره بلل او يواځې به له خپلو ملګرو او همفکرو سره يې دوستي او ورورولي پالل.

## د بې ديني مذهب يا (سيکولريزم)

### ددې مذهب اصليت څه شی دی؟

اګر که دوي پر ځان دا نوم نه دی ايښی، مګر ددې مذهب له اساس او عقيدی څخه دا راڅرګنديږي، چې له قادر او قاهر ذالجلال رب څخه په انکار کولو ولاړ دی، دغه نظريه له مرګ څخه وروسته ژوند، جنت او دوزخ، ثواب او عذاب، نبوت او رسالت، اسماني دينونه او پر شرعي حدودو او احکاماتو هيڅ باور نه لري او دا عقيده نه لري، چې رسول الله صلی الله عليه وسلم وروستي پيغمبر او اطاعت يې په هر مسلمان، عاقل او بالغ واجب دی، چې د ټول انسانيت نيکمرغي او سرلوړي او کاميابي يواځې د رسول الله صلی الله عليه وسلم په اطاعت او تابعدارۍ پورې خاص دی.
اسلام د کامياب او پرمختللي ژوند لپاره تر ټولو اوچت او کره قانون دی، چې د دنيا او اخرت پت، عزت، نيکمرغې، سرلوړي، برياليتوب په همدې دين کې رانغښتي دي، الله تعالی له اسلام څخه پرته نور يو دين هم نه مني، نو دا د (لاديني يا سيکولريزم) عقيده خو په هيڅ دليل سره نه مني.
الله تعالی فرمايي:
دنيا د انسان لپاره پيدا شوی، مګر انسان د الله تعالی عبادت لپاره پيدا شوی دی.

## ویرجنه پېښنه

تر ټولو لویه او ویرجنه پېښنه داده، چې نن د اسلامي هیوادونو واګې د داسې کسانو په لاسونو کې دي، چې فکرونه یې په الحادي او لاديني زهرجنو نظریاتو خړوب شوي دي، غرب ته ډیر وفادار او نږدې خلک دي، په عقیدوي لحاظ ټول د غرب په فکر رنګ شوي دي، په مادیت او لادینیت کې له پولو هم اوښتي دي، دوي په خپلو فعالیتونو کې سره توپیر لري، مګر په اهدافو، نظریاتو او ارتدادونو کې له یو بل نژدې دي.

زه په ډاګه وایم، چې دا یو ډیر لوی او اوږد مهاله ارتداد دی، چې اسلامي نړۍ له شرقه تر غربه تر خپل تاثیر لاندې راوستي دی، هیڅ یو ځای ترې په امن کې پاتې نه دی، کلي، کورونه، پوهنتونونه، مکتبونه، د پوهې او زده کړې مرکزونه له دې فکري یرغل څخه زیانمن شوي دي، داسې ډیرې لږې کورنۍ به وي، چې په دې سیلاب کې لاهو شوی نه وي او یا ترې اغیزمن شوي نه وی.

که چېرې دغه، له الله تعالی نه منکرو او ملحدو (سکولرانو او دیموکراتانو) سره مخ شی او یا د دوي له پټو رازونو پرده پورته کړی، نو ډیر ژر به دربښکاره شي، چې دوي نه ذوالجلال رب مني، نه د اخرت په ورځ ایمان لري، نه حساب کتاب مني، نه د ټول بشریت ستر لارښود محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم د یو ستر لارښود په توګه مني، نه قران عظیم الشان د ژوند د یوه پوره او کره قانون په توګه مني، په دوي کې تر ټولو ښه سړی هغه وي، چې وایي: (مونږ ددې عقایدو او پخوانیو کیسو په اړه هیڅ فکر نه کوو او نه کوم اهمیت ورته ورکوو).

## هغه ناروغي چې درمنله نه لري!

له شک پرته ویلې شو، چې د ارتداد دغه وژونکي ناروغۍ او د بې دینې تخریبوونکی طوفان له ټولو ورانکاریو سره تر اوسه هم، مسلمانان د ناخبرې په درانه خوب ویده دي، ضمیرونه یې مړه او ذهنونه یې له مخالفت څخه وینځل شوي دي، ځکه څوک چې ددی ارتداد په دام کې راګیر شوي، هغه بیا هیڅکله د اسلام په خوند شوی نه دی او دوي کې داسې ژور کار کړې چې هیڅکله یې د کلیسا او جومات په لاره نه دي تللي او نه له اسلام څخه د سرغړونې او ارتداد له امله بل دین منلی، نو له همدې امله کورنۍ یې هم له ځانه نه لرې کوي او نه نور مسلمان یې په مقابل کې عکس العمل ښکاره کوي، بلکې داسې ملحد انسانان د مسلمانانو په ټولنه کې ښه ازاده او خپلواکه ژوند کوي او د خلکو تر منځ نفوذ هم لري، چې هیڅوک یې مخالفت او مخنیوی نه نشي کولی.

د اسلامي نړۍ تر ټولو لویه غمیزه همدا عصري ارتداد دی، چې ورځ تر بلې د پراخیدو په حال کې دی، چې له علماؤ څخه هم د مخنیوي او درملنې لاره ورکه کړې ده، مخکې به کله چې داسې کومه پېښنه رامنځته کیده، نو خلکو به ویل: (قضیة ولا اباحسن لها) ستونزه راپېښنه شوی، مګر ابوالحسن علي رضي الله عنه یې د حل لپاره نشته، مګر نن ددې ارتداد د درملنې په اړه زه وایم: (ردة ولا

اابکر لها!) ارتداد راغلی، مګر د ابوبکر صدیق رضي الله عنه په شان شخصیت ورته نشته!.
پر دې باید ځان پوه کړو، چې ددې غربي تاړاک مخنیوی او د حل لاره یواځې په نظامي توګه نشي کیدای او نه د خلکو د پارولو، پاڅونونو او مظاهرو له لارې حل کېدای شي، ځکه له غوسې او شدت سره نه یواځې مخه یې نه نیول کیږي، بلکې نوره هم پراختیا ته یې لاره هواریږي، کفر او ارتداد نور هم زور اخلي.
اسلام نه د عقیدوي محکمو او څېړنو پلوی کوی او نه زور زیاتې قبلوي، بلکې هر انسان یې خپلې خوښې او عمل ته پرېښي، چې کومه لاره خپلوي، ځکه ایمان د زړه او اعمالو او اقرار مجموعې ته وایې او د هر چا تر عقیدوي قوته پورې اړه لري، مګر د سرغړونې په صورت کې د دنیا او اخرت ذلت او رسوایي به یې په برخه وي.
اوس نو ددې ستونزو د حل یواځینۍ لاره په، قاطع تصمیم، صبر، استقامت او د مسلمان امت پر فکري او عملي کمزورتیا باندې ژور کار کولو کې دی، چې د اسلام او ایمان په اړه څومره شکوک او اندېښنې وراچول شوي وي، په ډېر حکمت، پوهې او زیرکتیا سره یې له ذهن څخه وویستل شي او د اسلام حقیقي مفهوم وروپېژندل شي.

## په نړۍ کې د لادینیت د پرمختګ عوامل (د سیکولریزم ریښې)

څه وجه وه، چې دغه نوی دین (سیکولریزم) (لادینیت)(له مذهب څخه ازادي) ډېر ژر په نړۍ کې خپور شو او ولې دغه په زهرو لړلې او ویجاړونکی مفکوره پر مسلمانانو یرغل وکړ؟ او څنګه ډېر ژر یې پر فکرونو او عقلونو واکمن شو؟.
ددې پوښتنو د کره ځوابولو لپاره ژوره څېړنه او پراخې مطالعې ته اړتیا ده، تر څو ددې نویو دینونو په حقایقو ځان او نور مسلمانان پوره خبر کړو، لنډه دا چې په نوولسمه پېړۍ کې اسلامي نړۍ او مسلمانان د عقیدې، دعوت، علم او فکر له امله ډېر زیانمن شول او د کمزورتیا نښې پکې راښکاره شوی وی، مګر اسلام هیڅکله نه کمزورې کیږي او نه یې په حقانیت کې څه کمي راځي، هره ورځ نړۍ او طبیعت ته یو نوی ژوند او روح وربښي.
اسلام تل سرلوړی او اوچت وي، ددې مثال د لمر په شان دی، چې له پیدایښت یې ډېر کلونه کیږي، مګر زړښت نه لري، تل روښان، پوره او ځلیدونکی وي، ددې لمنځه تلل، د مسلمانانو په لمنځه تللو پورې تړلي دی، یعنی تر څو چې یوه کلمه ویونکی مسلمان په دنیا کې پاتې وي، نو الله تعالی به دا نړۍ نه ختموي، مګر نن ورځ مسلمان امت د علم او پوهې، د اختراع او نوښت، د فکر او عقل، د دعوت او بلنې، د سرښندنو او جهادونو په ډګر کې پاتې راغلی او مخ په ځوړ او ناهیلي روان دی، ځکه دوي اسلام د یوه قانون او تګلارې په توګه په خپل ژوند کې عملي کړی نه وو، دوي اسلام د لمونځ او روژې تر پولې پیژندل، نو له همدې امله

مسلمانان په دې پېړۍ کې له ستونزو، کړاونو او ناخوالو سره مخ شول او د غلامۍ او ناچارۍ زولنې یې په غاړو کې پریوتل.
مسلمانان په دې کې هم پاتې راغلل، چې د اسلام حقیقي معنی او د ژوند یوه سپیڅلی نمونه نړیوالو ته وړاندی کړي، تر څو خپلو ځوانانو او نړیوالو ته پرې استدلال وکولای شوو، بله دا چې له ځوان نسل سره د علماؤ، پوهانو، د فکر او عقل خاوندانو اړیکې ډیرې کمزورې شوی، ځوانان په خپل سر پرېښودل شول، چې هر څه وکړي، هر څه ووایي او هر څه ومني، چا یې مخه ونه نیوله، ددوي له زړونو او دماغو څخه غربي شیندل شوي افکار ونه ویستل شول او دا ډاډ یې ورنکړ، چې یواځې اسلام او قران تلپاتې قانون او د ټول بشریت د نیکمرغۍ او بریالیتوب لامل دی.
د اسلام داسې غوټۍ ده چې هیڅکله نه رژیږي، تل تروتازه او زرغونه وي، داسې باغ دی، چې که څومره ګلان ترې وشوکوي، خزان پکې نه راځي، بلکې نور هم ګلان او غوټۍ راټوکوي او د سیلانیانو د خوښۍ او سکون لامل ګرځي.
زموږ ستر لاربښود رسول الله صلی الله علیه وسلم د غوره اخلاقو، سپیڅلو عاداتو او کردارو یوه لویه معجزه ده، د ټولو قومونو لپاره پیغمبر او د ټول بشریت او ټولو پیړیو لپاره قائد او رهبر دی او اسلام یواځینی اسماني دین دی، چې د انسان له هر دور او هر نسل سره اوږه په اوږه حرکت کوي او د هغه د ژوند په هره برخه او هر پړاو کې څارنه کوي.
هو! دا سمه خبره ده، چې د ځوان نسل په فکري برخه کې هیڅ کار نه دی شوی، چې ددوي زبیخل شوي ذهنونه پرې خلاص شوي وای او د غرب د فکري یرغل په مقابل کې مبارزه او مقاومت کړی وای، ځکه د ټولنې بنسټ او اساس باید پر ایمان، سپیڅلي عقیدی او معنوي ارزښتونو ولاړ وي.
نوی توکم پر دې پوهول شوي نه دي، چې اوسنی غربي بلاک د تمدن، بیان، فکر او مذهب ازادي، د حقوق، مساواتو، پرمختګ او داسې نور غوړ زیر نومونه د یوی غولوونکی وسیلې په توګه کاروي، بلکې د غوره اخلاقو، حقیقي سرلوړی، پرمختګ او تمدن یواځینې سرچینه د انبیاء علیهم السلام تعلیمات او دینونه دي، چې یواځې ددې سپیڅلو اهدافو او عصري اسبابو له یو ځای کولو سره کولای شو یو پرمختللې او له اصولو سره برابر تمدن رامنځته کړو.
دی حالاتو نه په ګټې اخیستو سره اروپا په اسلامي نړۍ له نویو فکرونو، فلسفو، نظریاتو او پروګرامونو سره په ډیر شدت او سختې سره یرغل وکړ، دغه په زهرو لړلي فکرونه د اروپایي فلاسفو د کوښښو او ستړیاو پایله وه، چې په ډیر زیرکتیا او پوهې سره پلان شوي وو، دومره ژور کار یې کړی و، چې ټولو خلکو دا فکر کاوه، چې د انسان د ټول کوښښ، څیړنې، تصور، خیال او علم وروستې پایله همدا ده او بس، له دې وړاندې د انسان ذهن عاجزه دی، سره له دې چې ددې علمونو، فکرونو او فلسفو اساس په ګمان، توهم او اټکلیاتو ولاړ وو او له دې وړاندې بل

**څه حقیقت یې نه درلود، ډیر لږ به یې له صحیح تجربو او عملي لیدلورو سره برابر وو.(1)**
**دا ډول فلسفی او نظریات په حقیقت کې د حق او باطل، عقلیاتو او ناپوهېو سره ګډ واقیعتونه هم وو، مګر په دې ټولو کې شاعرانه خیالات موجود وو.**
**تاسي داسې فکر مه کوئ، چې شعري تصورات او خیالات یواځې په قافیه او بیت کې وي، بلکې په علمي او فلسفي برخو کې هم وي، په ډیر تاسف سره باید ووایم، چې دا ټولې فلسفې له اروپا څخه شرقي ځمکو ته د یو فاتح او سالار په ډول راننوتـل او په ډیر شوق او جذبه ټول مشرق د زړه له کومې اروپایي فکر واردونکو فاتحانو ته ښه راغلاست ووایه او د هغوي اطاعت لپاره لاس په نامه ودریدل، چې په دوي کې باسواده او تعلیم یافته ډله تر ټولو وړاندې په لومړي صف کې ودریدل، البته ددوي اکثریت په ناپوهې، جهالت او له دې افکارو د ناخبرتیا له امله منلي وو، مګر ځینو له پوهې، شعور او حقیقت موندلو سره بیا هم ورته غاړه کیښودل.**
**هر چا به چې دیته ته غاړه کیښوده او یا ددوي پر نظریاتو یې ایمان راوړ، نو دومره به ترې متاثره کیده، چې د بریالیتوب، پرمختګ، عزت او سرلوړی یواځینې لامل به همدا نظریات ګڼل، چې هر څوک دی باید ددوي په شان پر دې فاسدو عقیدو ایمان راوړي او ددوي اهداف خپل شعار وګرځوي.**
**هو! ارتداد او له دین نه بغاوت، له همدې لارې په اسلامي هیوادونو کې خپور شو، ډیر په خفي او پټه توګه، پرته له دې چې څوک پرې پوه شي، دا نظریات د ځمکې لاندې مزل کاوه، چې نه پلاران کوم مخالفت وکړ، نه روزونـکي او د فکر او پوهې خاوندان دی لوري ته د پام وړ اقدام وکړ، ځکه دا ارتداد ډیر په ارام د پوهې، علم، تمدن، ټکنالوژی او نوی عصري نصابونو له لارې راننوتې وو، دوي نه د کلیسا له لارې دېته راغلل او نه د کوم نوي معبد له لارې دی ارتداد ته راننوتل او نه د چا په مخکې یې سجده وکړه، ځکه په وړاندنیو پیړیو کې ارتداد همدې ته ویل کیده، چې څوک کلیسا، معبد او یا بت خانې ته ننوځي او له اسلام څخه ښکاره بغاوت وکړي او په همدی ډول به هغه مرتد او له اسلامه خارج ګڼل کیده، مګر دلته په دې نوي ارتداد کې ددی معبودانو هیڅ یو هم نه ښکاري، له ځانه خبر نه وي او له اسلام څخه وتلي وي.**

## منافقت او له دین نه بغاوت (الحاد)

**لکه څنګه چې وړاندې مو یادونه وکړه، مخکې به مرتدین مکمل له اسلام څخه ځانونه خالي ګڼل او هیڅ تړاو به یې ورسره نه درلوده او یوې نوی ټولنې او عقیدی پورې به یې ځان منسوبوه او دا عقیدوي بدلون به یې په ډیر جرئت او**

[1] په وروستیو پیړیو کې د اروپا او غربي نړۍ علمي او تکتیکي پرمختګونه ددې لامل شوي، ترڅو ساده لوحه خلک ګومان وکړي، چې پرمختګ یواځې ددوي په لوړو زده پورې تړلې دی.

افتخار سره ښکاره کاوه او خپلو ټولو مشکلاتو او ستونزو لپاره د حل لاره یواځې په همدې نوي مذهب (سیکولریزم) کې لیده، نور یې نه غوښتل چې په اسلام کې پاتې شي، مګر نن ورځ داسې نه ده، نني مرتدین خپلې ټولې اړیکې له اسلام څخه پرې کړی، مګر دا نه غواړي چې د مسلمانانو له ټولنې څخه هم ځان جدا کړي.
په حقیقت کې یواځې اسلامي ټولنه ده، چې له کلکې عقیدې او عملي ژوند څخه پرته پکې پاتې کېدل هیڅ امکان نه لري، سره له دې، بیا هم دا ډول خلک د مسلمانانو په منځ کې ځانونه ځای کړي او په ډېر ډاډ او ارامۍ ژوند کوي، تر دې چې د خلکو اعتماد یې هم ترلاسه کړی دی او د اسلام له ټولو حقوقو څخه برخمن دی، یقینا چې په اسلامي تاریخ کې داسې ارتداد هیڅ ځای نه لري.

## د جاهلیت شخړی او نژادي بدبینې

غربي افکار له یوې خوا عقیدوي مقدسات او اخلاقي پولې تر برید لاندې نیسي او له بلې خوا د جاهلیت او ناپوهې احساسات راپاروي او خلک یو ځل بیا د تورو تیارو په لوري راکاږي او اسلام دا ډول احساسات په پوره توګه ردوي او هیڅوک تر نژادي پولو او ژبني محدودیتونو پورې یې نه رالنډوي، مګر غربیان او د هغوی لارویان بیا وحدت د وطن پرستۍ، ملتونو او نژادونو په اساس ګڼي او د جاهلیت له دې ټولو تعصباتو څخه دفاع کوي او په دې لاره کې جنګیږي، همدا ژبني او نژادي تعصبات د ژوند په ټولو برخو اغیزه اچوي او تر برید لاندې یې نیسي.
نو له همدې لارې د نژاد پرستۍ حس د خپل نفوذ او قوت له امله په ټولو مذاهبو کې ریښې زغلوي، کله چې دا حس پر ټولنې منګولې ښښې کړي، نو خلک او ټولنې رالاندې کوي او د پیغمبرانو کوښښونه، دعوتونه او اسلامي عقیدی چې د بشریت د سرلوړی، بریالیتوب او نیکمرغۍ لپاره یې راوړي دي او هغوي یې د جهالت له تورو تیارو څخه د رڼا په لور رایستلي دي، ټول له خاورو سره خاوری کوي او د خالق او مخلوق ترمنځ اړیکه پرې کوي.
هو! بیا همدا د جاهلیت حس دومره پراختیا ومومي، تر دې چې د ژوند په ټولو برخو کې واکمن شي او دین د عبادت یوه برخه او د رواج په ډول وګرځوي، چې په پایله کې نړۍ په مختلفو عقیدوي او جګړیزو ډلو وویشي، هغه واحد امت چې الله تعالی یې په اړه فرمایي: (وَإِنَّ هَذِهِ أُمَّتُكُمْ أُمَّةً وَاحِدَةً وَأَنَا رَبُّكُمْ فَاتَّقُونِ) یقینا دا ستاسې امت یو متحد امت دی او زه ستاسې رب یم له ما څخه وویرېږئ.
داسې امت دوي غواړي په ډلو او ټپلو وویشي.

## اسلام ولې له دی تعصباتو سره مبارزه کوي؟

رسول الله صلی الله علیه وسلم پرته له کوم حکمت او مصلحت څخه له خپل ټول قوت سره ددې تعصباتو د مخنیوي لپاره په مبارزه لاس پورې کړ او د هغه

زياتيدو لارې يې په شدت سره بندې کړی، څکه داسې يو نړيوال او متحد دين له دی تعصباتو سره هيڅکله پاتې کيدای نشي، که چېرې اسلامي کتابونو او سرچينو ته ځير شوو، ډير داسې دلائل مو مخې راځي، چې دا ډول تعصبات يې محکوم کړی او په ډيری سختې سره يې رد کړی دی او اسلام خپله بيزاري ترې اعلان کړی دی.
که د اسلامي نړی تاريخ په هر اړخيزه توګه تعصبي او سياسي برخه يې تر مطالعې لاندې ونيسو، نو ښکاره به شي، چې د جاهليت دا ډول تعصبات د بشريت د فساد او بربادی لوی لامل دی، څکه انسان دې لپاره نړی ته راغلې دی، چې په عقيدوي لحاظ له ټولو انسانانو څخه يو متحد امت رامنځته کړي او ټول بشريت تر يوی قيادت لاندې، يو داسې قوت او لښکر ترې جوړ کړي، چې پر الله تعالی ايمان او له يو بل سره پر مينې او محبت ولاړ وي، که چېرې رښتيا د انسانانو موخه همدا وي، نو د ازغنو بوټو پر ځای د امنيت او ارامې ګلبڼ وکري او د ټولو انسانانو ترمنځ د مينې او الفت فضا رامنځته کړي او خپلو منځو کې يې دومره سره خواږه کړي، چې هر يو يې د بل په درد دردمند شي او د بل په غم غمجن شي او هيڅکله د تعصب پولې ته نژدې نشي، تل دا کوښښ به کوي، چې ددې نوم (تعصب) اثر لمنځه يوسي.

## په اسلامي هيوادونو کې نژادي شخړی

په ډير افسوس سره چې اسلامي نړی د رسول الله صلی الله عليه وسلم د شپې او ورځې ۲۳ کالو مشکلاتو، کړاونو او زحمتونو پايله وه، چې د اروپا د سياسي او فرهنګي يرغل له امله ددې پر ځای چې د جاهليت د نژاد پرستو په وړاندې مبارزه وکړي، د زړه له کومې يې ومنل، څانونه يې وبايلل او غربي فکر يې د يوې عقيدې او تګلارې په توګه ومانه.
نن ورځ په اسلامي هيوادونو کې مختلف ملتونه او توکمونه ددې زهرجنو او نجسو افکارو د پرمختيا او بيا راژوندي کولو په کوښښ کې دي، چې د اسلام سپيڅلې دين يې له وړاندې ډير سخت ترديد کړی وو او ټول هغه پوچ افکار چې غرب يې خپروول غوښتل لمنځه وړي وو او داسې يې نابود کړي وو، چې تر ننه يې هيڅ نښې او نښانې هم نه ښکاريده.
تر ټولو لويه انديښنه داده، چې څينې پريوتې او ذليله عناصر د نژادي روحياتو د بيا راژندي کولو او د جاهليت د شعارونو په خپرولو کې ډير فعاليتونه کوي او دا خبره دومره په زور او څوږ سره کوي، ګويا دوي غواړي، چې د جاهليت د زمانې بت پرستي بيرته راژوندی کړي او يو نوی رنګ ورکړي.
اسلام د (جاهليت) له کلمې سره دومره نفرت او حساسيت لري، چې د کفر او شرک نومونه يې ورته ورکړي دي، د رسول الله صلی الله عليه وسلم له زمانې څخه وړاندې دور ته د جاهليت زمانه ويل کيده، چا به يې له ډيره غمه نشو يادولی، مګر نن ورځ يې غرب څپلي جاهلان په ډير وياړ او افتخار سره يادوي او

**هر ملت غواړي، چې ځان له رڼا او پوهې څخه د تورو تیارو او جهالت (د جهالت د تمدن) په لور روان کړي.**
**هغه جهالت چې د اسلام مبارک دین له هغې څخه خلاصون ته نعمت ویلی دی او مسلمانانو ته یې لارښوونه کړې، چې ددې نعمت شکر پر ځای کړي.**
**الله تعالی فرمایي: (وَاذْكُرُوا نِعْمَتَ اللَّهِ عَلَيْكُمْ إِذْ كُنْتُمْ أَعْدَاءً فَأَلَّفَ بَيْنَ قُلُوبِكُمْ فَأَصْبَحْتُمْ بِنِعْمَتِهِ إِخْوَانًا وَكُنْتُمْ عَلَى شَفَا حُفْرَةٍ مِنَ النَّارِ فَأَنْقَذَكُمْ مِنْهَا) ال عمران ۱۰۳**
**او پر تاسې د الله تعالی هغه نعمت یاد کړئ، چې کله تاسې دښمنان وئ، نو ستاسې د زړونو تر منځ یې محبت واچوه، ددې نعمت په برکت تاسې سره ورونه وګرځیدئ او له دې وړاندې تاسې د اور یوې څنډې کې وئ، نو الله تعالی تاسې ترې خلاص کړئ.**
**بل ځای الله تعالی فرمایي:**
**(بَلِ اللَّهُ يَمُنُّ عَلَيْكُمْ أَنْ هَدَاكُمْ لِلْإِيمَانِ إِنْ كُنْتُمْ صَادِقِينَ) (الحجرات ۱۷)**
**بلکې الله تعالی پر تاسې احسان کړی، چې تاسې ته د ایمان په لوري هدایت کړی دی، که چېرې یې تاسې ریښتوني.**
**بل ځای الله تعالی فرمایي: (هُوَ الَّذِي يُنَزِّلُ عَلَى عَبْدِهِ آيَاتٍ بَيِّنَاتٍ لِيُخْرِجَكُمْ مِنَ الظُّلُمَاتِ إِلَى النُّورِ وَإِنَّ اللَّهَ بِكُمْ لَرَءُوفٌ رَحِيمٌ) الحدید۹**
**الله تعالی هغه ذات دی، چې نازل کړی یې دی، پر خپل بنده، ښکاره ایتونه، دی لپاره چې تاسې له تیارو څخه د رڼا په لور راوباسي او یقینا الله تعالی پر تاسې مهربانه او رحم کوونکی ذات دی.**

## د جاهلیت په مقابل کې د یوه مسلمان دنده

**دلته دې خبرې ته پام را اړوو، چې هر مسلمان باید د پخواني او اوسني جاهلیت په وړاندې ډېره سخته کرکه او دښمني ولري او تر ټولو زیاتو نفرت لرونکو شیانو کې یې وشماري او په ټوله معنی ځان او ټولنه ترې وساتي.**
**ایا کله له یو داسې کس سره مخ شوي یاست، چې نوی له زندانه راخلاص شوي وي او د زندان هغه دردونه، کړاونه، کړیکې، زولنې، زنځیرونه، عذابونه او زړېروي وریادوئ، ډېر سخت ناارامه کیږي، ایا لیدلې مو نه ده، چې کله یو کس له وژونکې ناروغې څخه راخلاص شوي وي، کله چې هغه د خپلې ناروغۍ ورځې رایادوي، څومره غمجن کیږي او رنګ یې نور هم خرابیږي؟ او هغه کس مو لیدلی دی، چې د شپې ویرونکی خوب ویني، کله چې بیرته راویښ شي او هغه هبیتناک تصویر یې ذهن ته راشي، چې هیڅ حقیقت نه لري، هسې یو خیال وي، نو څومره به خوشاله شي، چې الحمدلله چې ریښتیا نه وو.**
**طبیعي خبره ده، که کوم زنداني ازاد شي، هیڅکله د زندان د شپو ورځو په یادولو نه خوشالیږي او افتخار پرې نه کوي او هغه ناروغ چې له وژونکې ناروغۍ څخه**

راخلاص شوي وي، له ناروغۍ سرټکوي او له هغو دردونو څخه شکايت کوي، چې مخکې پرې تير شوي وي او هغه په خوب کې ويريدونکی کس هيڅ نه خوښوي، چې کاشکې دا خوب دی ريښتيا وای، نو څومره د حيرانتيا او تعجب خبره ده، چې يو کس د جهالت له تورو تيارو څخه چې د دنيا او اخرت بدبختي ورپورې ترلې وه، برې مونډلای وي او روغ راوتې وي، ايا بيا هم دا غوښتنه کوي، چې بيرته هماغه تورو تيارو دور ته وروګرځي؟
ايا همداسې نه ده، چې کله څوک هغه ويروونکی حالت په ياد کړي او په زړه کې يې نفرت پيدا شي!؟ او د الله تعالی شکر وباسي، چې الحمدلله له دې دردونکی حالت څخه ورته خلاصون وبابښه او د رڼا او پوهې په لور يې راوويسته.
رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايي: (ثَلاَثٌ مَنْ كُنَّ فِيهِ وَجَدَ حَلاَوَةَ الإِيمَانِ: أَنْ يَكُونَ اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَحَبَّ إِلَيْهِ مِمَّا سِوَاهُمَا، وَأَنْ يُحِبَّ المَرْءَ لاَ يُحِبُّهُ إِلَّا لِلَّهِ، وَأَنْ يَكْرَهَ أَنْ يَعُودَ فِي الكُفْرِ كَمَا يَكْرَهُ أَنْ يُقْذَفَ فِي النَّارِ) رواه البخاري
درې داسې خويونه دي، چې په هر چا کې وي، هغه د ايمان خوند څلکلې شي، يو دا چې الله تعالی او د هغه رسول ده ته له هر چانه ډير خوښ وي، بل دا چې هر چا سره چې ملګرتوب کوي، يوازې د الله تعالی د رضا لپاره ورسره وکړي او بل دا چې کفر ته ورګرځيدل، دومره بد وګڼي، لکه څوک چې اور ته غورځيدل بده ګڼي.
الله تعالی په قران کريم کې د جاهليت د مشرانو او سرلارو ډيره بدي بيان کړې فرمايي: (وَجَعَلْنَاهُمْ أَئِمَّةً يَدْعُونَ إِلَى النَّارِ وَيَوْمَ الْقِيَامَةِ لَا يُنْصَرُونَ (41) وَأَتْبَعْنَاهُمْ فِي هَذِهِ الدُّنْيَا لَعْنَةً وَيَوْمَ الْقِيَامَةِ هُمْ مِنَ الْمَقْبُوحِينَ) القصص ٤١-٤٢
هغوي مو مشران وګرځول، چې د اور په لوري دعوت کول، د هغوي به د قيامت په ورځ هيڅ مرسته نه کيږي او پر هغوي مو په دنيا او اخرت کې لعنت کړی دی هغوي له ډيرو بدو خلکو څخه دي.
بل ځای کې فرمايي: (وَمَا أَمْرُ فِرْعَوْنَ بِرَشِيدٍ (97) يَقْدُمُ قَوْمَهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَأَوْرَدَهُمُ النَّارَ وَبِئْسَ الْوِرْدُ الْمَوْرُودُ– وَأُتْبِعُوا فِي هَذِهِ لَعْنَةً وَيَوْمَ الْقِيَامَةِ بِئْسَ الرِّفْدُ الْمَرْفُودُ)هود ٩٨
او د فرعون کار سم نه و، فرعون به د قيامت په ورځ د خپل قوم مشر وي او اور ته به داخل کړي شي، ډير بد ځای دی چې دوي ننوتل (دوزخ ته) او په دنيا او اخرت کې به ورپسې لعنت وشي، ډيره بده ورکړه ده، چې دوي ته ورکړل شو (لعنت).

## په اسلامي هيوادونو کې د جاهليت د زماني تاثرات

په ډير تاسف سره بايد ووايو، چې نن ورځ اکثره اسلامي هيوادونه او مسلمان ملتونه د غرب د فکري استعمار تر تاثير لاندې راغلي دی او له اسلام څخه وړاندې د جاهليت زمانه لمانځي او هغه پخواني ناروا رواجونه او عادات بيرته

راڅوندي کوي او دا کوښښ کوي، چې د جاهليت له مشرانو او پاچاهانو څخه د تاريخي شخصيتونو او مفکرينو په نامه يادونه وکړي، ددوي په اند د جاهليت زمانه يوه طلايي دوره وه چې اسلام دغه هيوادونه او ملتونه ترې محرومه کړي دي.
درنو لوستونکو لږ فکر وکړئ! او د انصاف نه کار واخلئ، چې ايا دا ډول انګيرنه او فکر د طبيعت خلاف نه دی؟ ايا دا ډول غلط استدلال له اسلام څخه د ناخبرتيا او ناپوهی دليل نه دی؟ ايا دا د پيغمبر عليه السلام په سپيڅلي حريم کې بې احترامي نه ده؟
رښتيا چې هم دا ډول فکرونه ددې ښکارندوي کوي، چې د کفر او جهالت بدي او قباحت مکمل له زړونو وتلی نه دی، کفر ورته هيڅ کفر نه ښکاري او جهل ورته جهل نه ښکاري.
حقيقت دا دې چې داسې بې بنسټه او بې بنياده خبرې له خولې څخه راووځي، چې له يوه ديندار مسلمان نه يې هيڅکله تمه نه کيږي، د انسان زړه لړزوي او په ويره کې يې اچوي، داسې نه چې ددغه زهرجنو افکارو له امله د اسلام او ايمان له سپيڅلي نعمت څخه بې برخې نشم او د قادر رب د قهر او غضب وړ ونه ګرځم، دنيا او اخرت به مې برباد شي.
الله تعالی په قران کې فرمايي: (لَا تَرْكَنُوا إِلَى الَّذِينَ ظَلَمُوا فَتَمَسَّكُمُ النَّارُ وَمَا لَكُمْ مِنْ دُونِ اللَّهِ مِنْ أَوْلِيَاءَ ثُمَّ لَا تُنْصَرُونَ)سورت هود ۱۱۳.
د هغه کسانو په لور ميلان مه کوئ، چې ظلم يې کړی، چې تاسې ته به هم اور در ورسي او له الله تعالی پرته تاسې لپاره دوست نشته بيا به له تاسې سره مرسته ونه شي.

## په دين او اخلاقو کې بې غوري

له کومو خبرو چې پورته يادونه وشوه، له هغې پرته يوه بله فتنه چې اسلامي نړۍ پرې اخته شوی دی، هغه دا دې چې مسلمانان نن ورځ د مادياتو او غربي تمدن د لاسته راوړو لپاره دومره کوښښ کوي، چې د دين او اخلاقو له ټولو پولو څخه پر تيرېدلو هم دريغ نه کوي، په بله معنی دوي دنيا د اخرت په بدل کې غوره کړی دی، د دنيا پر ژوند غوليدلي او د شيطان او خواهشاتو په جال کې راګير دي، د همدې انحراف او بې لارې له امله ماده پرست او هوسا غوښتونکی خلک په ګناهونو، فحشاؤ، فسادونو، شرابونو او زناګانو کې ډير په تيزې اخته شوي دي، د اسلام ټول حدودو يې مات کړي دي او له خپل رب څخه بغاوت يې اعلان کړی دی، دوي له اسلام سره هيڅ اړيکه نه لري او يا دا چې اسماني احکامات هسې پخواني کيسې او خبرې بولي، د خپل ژوند د يو قانون او تګلارې په توګه يې نه مني.
له دې فکر څخه موږ ته دا خبره راڅرګنديږي، چې دوي د اسلام له حقايقو او سپيڅلو احکامو څخه هيڅ خبر نه دي او له اسلام څخه مکمل پردي شوي دي.

## په اسلامي نړۍ کې د جاهليت ځپونکی څپې

د اسلامي نړۍ دی دردونکی حالت ته په کتو ويلې شو، چې د جاهليت له شور او ځوګ څخه ډکې څپې دومره هبيتناکه دی، چې ټوله اسلامي هيوادونه يې په بې ځارې توګه تر تهديد لاندې راوستي دی، ځکه اسلامي نړۍ له دې وړاندې داسې يوی قضيې سره مخ شوی نه و، مصيبت دا دی چې دې لوی خطر ته ډير لږ خلک متوجه دي، دوي بايد ددې وژونکې او وحشتناک طوفان په مقابل کې خپل ټول استعدادونه، قوتونه او وړتياوی په کار واچوي او د مبارزې ډګر ته را ووځي.

که تير تاريخ ته يوه کتنه وکړو، نو راڅرګنديږي چې په اسلامي نړۍ د بې دينې او الحاد (سيکولريزم) دغه طوفان د يوناني فلسفې له لارې يرغل کړی دی، په هماغه وخت کې د اسلامي فکر پوهان، له علم او پوهې څخه غني اشخاص، پياوړي او په ديني احکامو کې پرمختللې علماء ددوي په مقابل کې د مبارزې او مقاومت ميدان ته راووتل، کله چې د (باطنيه) او (ملاحده) فتنې د مسلمانانو په منځ کې سر راښکاره کړ، نو د علم او حکمت په زغرو او وسلو سمبال علماء د دلايلو ميدان ته راودانګل، د علمي دلايلو او منطقي ځوابونو جګړه پيل شوه او غربي الحادي نظريات يې په نطفه کې خنثی او غاښ ماتوونکی ځوابونه يې ورکړل.

په هر حال اسلامي نړۍ په هغه وخت کې په علمي او عقلي لحاظ دومره قوي وو، چې د ګمراهيو، فتنو او بې دينۍ په مقابل کې مقاومت لپاره پوره چمتو وو او کولې يې شول، چې د پيل ځای يې وروستې ځای وګرځوي او ساه اخيستلو ته يې پرينږدي.

## ننې ستونزه

اوسمهال تر ټولو مهمه مسئله داده، چې اسلامي عبادات، اخلاق او شعائر په لوی خطر کې قرار لري او د پرديو کلتور، عادات او رواجونه مخ په ډيريدو دي، اګر که ددی مخنيوی ضرور ده، مګر له دی ټولو زيات مهم لا دادی چې د دين بنسټونه او اساسات (شعائر الله) په خطر کې واقع دی، نن ورځ د ايمان او کفر خبره د بحث وړ دی، د الحاد او د توحيد موضوع ښکاره کول پکار دي، بله دا چې ايا اسلامي نړۍ په اسلامي اصولو به همداسې پاتې شي او که اسلام به ترې ختم شي؟ اوسنی اصلی جګړه د اسلام او غربي فلسفې او ماديانو جګړه، د ايمان او د فولاد، د شريعت او شهوانيت د حزب الرحمن او حزب الشيطان ترمنځ جګړه ده، چې غربي ښکيلاګر او استعمارګر به دغه جګړه په مختلفو بڼو پرمخ بيايي لکه: د غربي فکر کتابونو، مجلو، مقالاتو او ورځپاڼو خپرول، ځوانان د مينې او عشق په نامه په زنا او فحاشي کې اخته کول، په نوی باسواده طبقه کې مادي او غربي تعليم رواجول، د اسلامي له سپيڅليو احکامو او ارشاداتو څخه هغوی لری ساتل او هيڅ ارزښت ورته نه ورکول، اسلامي مقدسات او شعائر ورته بې مفهومه ښکاره کول،

د ديني علم او علماؤ سپک ګڼل او داسې نور هلاکوونکی عادات راڅرګندی شوي دي.
زما په نظر دا وروستې جګړه ده، چې د اسلام او لادينيت (سکولريزم) تر منځ پيل شوی، په دې اوږدمهاله جګړه وخت کې ايا بریالیتوب او کامیابي به د اسلام وي او که د ماده پرستانو او بې دينانو؟!.
دی پوښتنو ته په راتلونکو پاڼو کې ځواب ورکړل شي.

## په اوسنی وخت کې تر ټولو لوی جهاد!!

ای مخلصو مجاهدينو او ای سرښندنکو دعوتګرانو! د نن ورځې تر ټولو لوی او اړين جهاد دادی، چې ددی فتنو او زهرجنو افکارو مخه ونيول شي، اسلام ته تر ټولو لوی خدمت دا دی، چې د نوي ځوان او باسواده نسل وينځل شوي ذهنونه، د اسلام، عقيدی، رسول الله صلی الله عليه وسلم د رسالت او حقانيت او اسلامي نظام په اړه مطئن کړئ، ډاډمن ځوابونه ورکړئ او ټول هغه شکونه او شبهات چې ځوان يې تر يرغل لاندې نيولي لمنځه يوسی، په فکري او فرهنګي لحاظ اسلامي تربيت ورکړئ او په اسلام کې يې مکمل داخل کړئ او د ټولو هغو افکارو، تصوراتو او خيالاتو په مقابل کې د جګړې لپاره راپاسئ، چې د خلکو په زړونو او عقلونو کې ځای نيولې او په ذهنونو يې واکمن شوي دي او د هغې پر ځای اسلامي فکر او تصور ورکړی او ايماني احساسات يې راپاروی.
محترمو ورونړو! پوره يوه پېړۍ تيريږي، چې اروپا زموږ ځوانان ښکار کړی او فکرونه يې تخريب کړی، د هغوي په ذهنونو کې يې د ارتداد، الحاد، په غيبو، اخرت او قيامت د نه ايمان لرلو تخم شيندلې او د خپلو سيکولر، سياسي او اقتصادي نظامونو په لوري يې رابللي، مګر دلته يو څه اندازه مونږ هم بې توجهي کړی او له خپلو ځوانانو غافله شوي يو او پر هماغو پخوانيو علمي ذخيرو، اسلوبو او تګلارو مو بسنه کړی او له نويو اختراعاتو، توليداتو او علمي څيړنو د وخت د اړتيا سره سم مو ګامونه نه دي پورته کړي، ددې پر وړاندې مو صحيح او له دين سره سم قواعد نه دي کيښودلي، په دې ټولو کې له موږ څخه غفلت او بې پروايي شوی دی او تر اوسه پر دې نه يو توانيدلي چې د سيکولريزم او نور غربي وارداتي فلسفې پوره تر څېړنې او تنقيد لاندې ونيسو، تر څو منفي او مثبت اړخونه يې د ټولو خلکو پر مخ څرګند شي، چې ساده لوحه او ناپوهه خلک پرې تير ونه ووځي.
بله دا چې زموږ اکثره وختونه په بې ځايه بحثونو او مناقشو کې تيريږي، د همدې مسؤليتونو د نه احساسولو له امله زموږ اسلامي نړۍ د غرب غيږې ته پرېوت، د ايمان او سپيڅلي عقيدی بنستونه مو په تزلزل کې شو.
نن ورځ د اسلامي هيوادونو واک د هغو نااهلو کسانو په لاسونو کې دی چې د ايمان او اسلامي عقيدی سره يې هيڅ اړيکي نشته، د اسلام او مسلمانانو په اړه پوره بې ارزښته او بې احساسه دي، يواځې له دې امله يوه اړيکه يې له

مسلمانانو سره شته، چې هغوي هم له همدې ملت څخه دي، د همدې ملت په غیږه کې راولوی شوي دي او د هغوي سیاسي او اقتصادی ګټې یې دی ته اړ باسي، چې ځان باید د خلکو په منځ کې مسلمان ښکاره کړي.
خو کاشکې چې دا مسئله یواځې د باسوادو او محصلینو پورې خاص وای، مګر په ډیر تاسف سره باید ووایم چې داسې نه وو، بلکې د بې دینې غربې افکار، عادات، رواجونه د ادبیاتو، ښوونې او روزنې، کلتور او رسنیو له لارې په ټولو خلکو کې نفوذ کړی دی او ټول مسلمانان یې سخت زیانمن کړي دي، زه دا ویره لرم چې هغه ورځ رانشي، چې د مسلمانانو اړیکې مکمل د اسلام څخه پرې شي.

## د ایمان په لوري بیرته راګرځیدل

په اوسنې وخت کې د اسلامي نړۍ ډیر ضرورت دا دی، چې نوی او عصري دعوت پیل شي او ددې نوی دعوت اساسي موخه به دا وي:

### راځي چې نوی د ایمان په لور وګرځو

مګر یواځې پر دې شعار بسنه نه کوي، بلکې باید پریکنده تصمیم ونیسو او داسې فکر وکړو، چې په کومه موثره او دقیقه طریقه باسواده، پر حالاتو واکمن او نوی نسل د اسلام غیږې ته راوګرځوو، د غرب د نوي فکري یرغلونو له غلامې او محکومیت څخه یې راخلاص کړو او هغوي د اسلامي ژوند له سپیڅلیو اهدافو سره اشنا کړو، د اسلام دښمنان په خپلو نویو او پرمختللو وسایلو سره په نړیواله سطحه پلانونه او پروګرامونه برابروي، تر څو خلکو ته اسلام کم رنګه او وروسته پاتې دین معرفي کړي او مسلمانان ترې زړه بدې کړي، باید خپل ځوانان او باسواده ډله له دې ټولو پروګرامونو څخه خبر کړو او د اسلام برم شان او شوکت وروپیژنو.

## مخلصو، مصلحو او فعالو دعوتګرانو ته اړتیا

پورتنیو موخو ته د رسیدو لپاره، نن ورځ اسلامي نړۍ مخلصو دعوتګرانو ته ډیره زیاته اړتیا لري، داسې علماء چې خپل شخصي اغراض پکې ونه پالي، خپل ټول ژوند او استعدادونه دې دعوت لپاره وقف کړي، داسې علماء چې شهرت، چوکې او مشري ونه غواړي، زړونه یې له حسد، کینې او دښمنې څخه پاکه او د پراخې سینې خاوندان وي، یواځینې موخه یې ټول امت ته خپل دعوت رسول وي، له نورو څخه تمه ونه لري، بلکې په دې لاره کې خپل ځان وخت او مال ولګوي، له هیڅ یوی ډلې ټپلې سره د چوکې د لاسته راوړلو لپاره کوښښ ونه کړي، خپلو فعالیتونو او کوښښونو سره خلکو ته دا ثابته کړي، چې ددوي اهداف له نورو معاصرو سیاسي حرکتونو او قدرت طلبو څخه ډیر اوچت او سپیڅلي دي، ددوي شعار باید اخلاص وي او له هر ډول ځانځاني، تعصب او کرکې څخه لری وي.

## علمي او فرهنګي مرکزونو ته اړتیا

له پوهنتونو ورانديزونو څخه پرته لازمه ده، چې دې موخو ته د رسيدو لپاره نوي علمي، تربيتي او فرهنګي مرکزونه فعال شي، تر څو په ډېر ښه ترتيب سره نوي نسل ته اسلامي مطالب او مسايل وړاندې شي، د غرب له تراشل شوي نظرياتو او اهدافو څخه يې خبر کړي، چې ځينې يې د مطالعې له لارې او ډېرې يې له چاپيريال څخه د متاثره کيدو له امله پرې مبين شوي دي او د اسلام حقيقي معنى او مفهوم د هغوي زړونو ته ورکوز کړي، ټول هغه زهري او وژونکي مواد ترې ختم او د اسلام ډيوه پکې بله کړي.

هو! مونږ د نړۍ په ټولو برخو کې همداسې علماؤ او داعيانو ته اړتيا لرو، چې په دې حساس پړاو کې فعاله ونډه ولري، په دې اړه زه په ښکاره دا وايم، چې د ژوند په يوه شيبه کې هم له هغې ډلې څخه نه وم، چې د دين او سياست په جداوالي قايل دي او نه له هغو کسانو يم، چې په هره زمانه کې د اسلام داسې تفسير کوي، چې د هغې زمانې له هرې کفري او غير اسلامي نظامونو سره برابري او موافقت ولري او چې د هرې ټولنې د تقاضاو او غوښتنو سره سم جوړ جاړې ولري او نه د هغو کسانو له ډلې څخه يم، چې سياست يې دومره بدې شي، چې د (الشجرة الملعونة فى القران) اطلاق پرې کوي.

بلکې حقيقت دا دې، چې زه د هغو کسانو په لومړي کتار کې ځای لرم، چې موخه يې د مسلمانانو تر منځ د يو سالم سياسي بصيرت او يو پياوړي رهبريت رامنځته کول دي، تر څو په راتلونکی کې د امت واک او تربيت په غاړه واخلي، د هغو کسانو په عقيده يم، چې هغوي وايي، تر څو واک او قدرت له دين سره نه وي او د نظام اساس او بنسټ په اسلام سره ولاړ نه وي، هيڅکله يوه اسلامي ټولنه او دين ته وفاداره اشخاص نشو روزلې، ان شاالله د ژوند تر وروستې سلګې پورې به ددې فکر او نظريې د بريالیتوب لپاره کوښښ وکړم او خلک به په خپل ټول قوت سره دې لوري ته رابلم.

البته د پام وړ خبره دا ده، چې له کومې نقطې څخه بايد پيل وکړو؟ او د کار طريقه به مو څه ډول وي؟ ديني حکمتونه او پر دين صحيح پوهيدل، وړاندې وروسته کول يې څه عواقب رامنځته کوي؟ او اوسني حالات له موږ څخه څه غوښتنې لري؟؟

## تيرې تجربې او لاسته راوړنې

تر اوسه پورې زموږ ټول کوښښونه د سازمانونو او حرکتونو پر جوړولو ددې لپاره مصرف شو، چې ټول خلک مسلمانان، ځوان نسل او مسؤلين اسلامي احکامو ته ژمن او معتقد دي او د مظلومو مسلمانانو په حال به دردمند کيږي او اقلا پر فرائضو خو به عمل کوي، مګر په حقيقت کې موضوع په مکمله توګه بل ډول ده، زما اټکل ناسم وو، که د خلکو حالاتو ته ځير شو، نو ايمانونه يې ډير

کمزوري او اخلاقي فساد پکې سخت زور اخيستی، په ډېر افسوس سره بايد ووايم، چې دوي پخپله هم دې نيمګړتياو ته متوجه نه دي.
په همدې ترتيب زموږ تعليم يافته ځوانان د غربي ايډياليزم (فکري جګړې) او اسلام ضدو افکارو تر تاثير لاندې راغلل او پر وړاندې يې تسليم شول، په مقابل کې يې خپل اسلامي شخصيت له لاسه ورکړل او د اسلام د سپيڅلو قوانينو او ارشاداتو په وړاندې پاڅون وکړ او په دې لټه کې شول، چې څنګه همدا وارد شوي زهرجن افکار خپلو سيمو او ټولنو ته کاپي کړي.
اګر که په دوي کې ځينې نرمزاجه او په تدريجې ډول کار کوي او ځينې يې سخت دريځ او د زور زياتې له لارې غواړي پرمختګ وکړي، مګر د ټولو موخه يوه ده.

## د باسواده نسل په وړاندې د ديني علماؤ دريځ

ديني علماء په عمومي توګه په دوه ډول دی.
يوه هغه ډله ده، چې په تعليم يافته ځوانانو ډېر تيزي او سخت دريځي کوي، له عواملو پرته يې د کفر ټاپه پر تندي ورته لګوي او له هغوي څخه سخت نفرت او بيزاري ښکاره کوي، پرته له دې چې تحقيق او څېړنې وکړي، پټ رازونه او منفي اړخونه يې برملا کړي او هغه لږ ايمان چې د هغوي په زړونو کې ځای نيولی، نور هم پياوړي کړي، د ديني او اسلامي تربيت لاندې يې وروزي، پرته له دې چې په دنيوي مادياتو پورې وتړل شي، حقيقي اسلام په لور راوبلل شي، د حکيمانه نصيحتونو په واسطه ناهيلي زړونه يې بيرته راوغوړوي، هيلې او اوميدونه پکې رازرغونه کړي، مشکوک او مخدوش ذهنونه يې د اسلام په رڼو اوبو وويځي.
دغه ډله په دې عقيده نه ده، چې ځوانان بايد له علماؤ، پوهانو، د فکر او عقل له خاوندانو سره کينول شي، د هغوي په لوري رادعوت شي، تر څو د هغوي له فکر، تګلاری او مسير څخه رنګ واخلي او خپل اسلام د غربي نصاب پر ځای د اسلامي نصاب له لارې زده کړي.
او د دويمې ډلې موقف له اولې ډلې څخه پوره بدل دی، دوي د تعليم يافته خلکو سره اړيکې نيسي، د هغوي په خوښيو او خپګان کې ځانونه شريک بولي، هر ډول مرستې له هغوي سره روا ګڼي، مګر ديني امورو کې مکمل بې توجه او بې باکه دي.
نوموړی ډله له فعالو ديني وګړو، مؤثرو داعيانو او له اسلامي غيرت څخه محروم شوي دي، سره له دې چې له ځوان نسل سره هر ډول مرستې کوي، مګر په اصلاحي برخه کې هيڅ د پاوړ کار نه دی کړی.
په ډيرې انديښنې سره بايد ووايو، چې نن ورځ په اسلامي نړۍ کې هغه خلک ډير کم پيدا کيږي، چې زړونه يې په دې ځوان او په مختلفو غربي ميکروبونو ناروغ مسلمان باندی وسوزي او د يو هوښيار طبيب په توګه يې درملنه وکړي، په ډير پوهې او حکمت سره هغوي د دين په لوري راوبلي، داسې احساس په ډيرو لږو خلکو کې شته.

هو! د همدې مخلصو او رب پالونکو داعیانو د نه شتون له امله ده، چې زموږ غرب ځپلي او د غربیزم په وایروس ککړ خلک ورځ تر بلې له اسلام څخه لرې کیږي او له دین څخه د ناشنایی په مرض اخته کیږي، تر ټولو لوی مصیبت دادی، چې زموږ هغه دینداره ډله ددې پر ځای چې زموږ ناروغه ځوانان ځان ته رادعوت کړي، برعکس نور یې هم له ځانه لرې کوي او له ځانه یې شړي، سپکې سپورې ورته وایې، نو ځکه دوي ترې متنفره کیږي او خپلې اړیکې ورسره پرې کوي، چې له امله یې دین سره هم علاقه کمیږي.
پاتې شول هغه افراد چې د واک او قدرت په نشو مست په چوکیو ناست دي، هغوي هم ددې غربي شویو ځوانانو د دردونو درملنه نه کوي، په حقیقت کې ددوې دواړو ډلو دا ډول تعامل له عصري او غربي تعلیم ځپلو سره له حقپالونکو علماؤ او داعیانو سره دښمني نوره هم زیاتوي، ځکه د انسان طبیعت داسې دی، چې کله هغه دنیا پرسته وي، نو که څوک ورسره په دنیوي مسایلو کې رقابت کوي، نو هغه یې دښمن دی، که د چوکې لاسته راوړل یې مقصد وي، نو خپل مخالف لورې هیڅ کله زغملې نشي او که د خواهشاتو او لذتونو غلام وي، نو هیڅوک له ځانه سره نشي یو ځای کولای.

## مقصدي او مهمه ډله

اسلامي نړۍ نن ورځ هغې ډلې ته ډیر زیات ضرورت لري، چې له هر ډول طمع او توقع څخه پاکه او خپل ټول استعدادونه او فکرونه د دعوت او اسلامي مبارزی په لاره کې لګوي، د دنیا ټولول، چوکې او واک ځان او ملګرو لپاره نه غواړي، کوښښ وکړئ، چې خپرونو، پروګرامونو، بحثونو، ګټورو کتابونو، مجلو او مقالو په خپرولو سره د ځوانانو شکوک او شبهات لمنځه یوسئ، چې د غربي کلتور او فرهنګ، یا زمونږه د غفلت او بې پروایې، له نبوي اخلاقو، تقوی او دیني ماحول څخه د لرې والي له امله په دوي کې پیدا شوي دي او دوي یې تر یرغل لاندې نیولي، ټول لمنځه یوسي.

## د تاریخ په رڼا کې د حقپالونکی ډلې اهمیت

تیر تاریخ موږ ته دا ثابته کړی، چې همدا ډله د اسلام لپاره پوره خدمت کړی، چې له هغې نه یو هم د بني امیه د کورنې اصلاح شوي مثال عمربن عبدالعزیز وړاندې کولای شو، چې هغه خپله وعده او مسؤلیت د اسلام په اړه پر ځای کړه او همدارنګه د مغول پادشاه په وخت کې (جلال الدین اکبر) د اکبر شاه په نوم تکرار شو.
هغه وخت چې هندوستان څلور پېړۍ د اسلام په سپیڅلي غیږه کې تیره کړی وه، اکبر شاه غوښته چې بیرته یې د جاهلیت په لوری راوګرځوي، مګر د (شیخ احمد سرهندي) په شان شخصیت چې مشهور په (امام رباني مجدد الف ثاني) سره وو،

په مقابل کې يې پاڅون وکړ، په ډېر حکمت، پوهې او تدبير سره د حکومت دی اقدام ته بدلون ورکړ او په تدريج سره مسير يې د اسلام په لوري راوګرځاوه.
د همدې شخصيت او د شاګرانو د پرلپسې زيارونو او کړاونو پايله وه، چې وروسته يو تقوادار، مجاهد او نيک پادشاه (اورنګ زيب عالمګير) يې قدرت ته ورساوه، چې دده کارنامې هم اسلامي تاريخ ته يو نوی ښايست وربښلې دی.

## هغه دنده چې په عملي کولو کې يې بايد ځنډ ونشي

مخکنيو وړانديزونو ته په پام سره زموږ د ټولو دنده ډېره زياته خطرناکه ده او بايد د هغې په ترسره کولو کې هيڅ ځنډ او غفلت ونشي، ځکه د اسلامي نړۍ کره اولادونه او ډېرې حساسې برخې د ارتداد او بې دينې په ډوبوونکی سيلاب کې راګير شوي دي او اخلاقي او معنوي ارزښتونه، مقدسات او نواميس يې تر سختو ګوزارونو او يرغلونو لاندې نيولې دی.
داسې نه چې زموږ د بې پروايې او ناپامې له امله خپله اسلامي نړۍ چې زموږ ثروت او دارايي ده له لاسه ورکړو، چې د رسول الله صلی الله عليه وسلم د تعليماتو او ارشاداتو او د سرښندونکو مجاهدينو په قربانيو او کوښښونو لاسته راغلی ضايع کړو.
په پای کې تاکيدا وصيت کوم، چې په دين باندې دردمند خلک دی همدې موضوع ته خاصه پاملرنه وکړي، څومره چې امکان لري په پوهې، تدبير، کلک عزم او پاک نيت سره د عمل ډګر ته راودانګي او اسلامي نړۍ له دې افته خلاص کړي.
د لومړي برخې پای

**دوهمه برخه:**

**د مسلمانو ځوانانو لپاره نصیحتونه او لارښوونې**
**د علامه سید ابو الحسن الندوي رحمه الله**

**الحمد لله رب العالمین والصلاة والسلام علی سید الانبیاء والمرسلین و خاتم النبین محمد وعلی آله وصحبه اجمعین.**
**امابعد:**
**محترمه لوستونکیه! دغه رساله د الشیخ ندوي رحمه الله له کتابونو، مقالو، وینا او مباحثو څخه راټول شوی دی، په دې رساله کې ګټورې لارښوونې او نصیحتونه نوي نسل مسلمانو ځوانانو لپاره راغونډ شوي دي، تر څو په خپلو اعمالو، ژوند او کړووړو کې اخلاص پیدا کړی او له دې لارې د خپل ژوند مسیر وټاکي او د غرب د شومو اهدافو ښکار نشي، ځان او ټولنې ته څنګه خلاصون ترې ورکولای شي، همدارنګه د یو ځوان مسؤلیتونه او هداف په ګوته کوي.**

**د قران کريم لوستونکی ته!**

**د کتاب ليکوال د انسان شخصيت جووړني په اړه پوره تجربه لري، چې اکثره له قراني نصوصو څخه ترې استفاده کوي،**

**د يو ځوان لپاره لازمه ده، چې د خپلې وسعې پورې ځان په قران کريم کې مشغوله کړي او هره ورځ تر خپلې وسې تلاوت دې کوي، مګر څومره چې زياته وي هومره ښه دی، له قران کريم څخه دې خوند اخلي، په ايتونو کې دې سوچ او تدبر کوي، مګر له قران کريم څخه د ګټې اخيستو او ژورې پوهيدلو لپاره لومړی بايد عربي ژبه زده کړي، چې مستقيما د تلاوت کولو سره په معنی او مفهوم د قران پوه شي، که چېرې عربي ژبه يې زده نه وي او په معناګانو يې نه پوهيږي، نو د قرانکريم لنډو ترجمو او تفاسيرو ته دې مراجعه وکړي او له دې لارې ځان په قراني احکامو پوره پوه کړي، ځکه په قران کې د تدبر او فهم ترلاسه کولو لپاره اسانه لاره همدا ده، مګر د تفسيرونو مطالعه لږ ډير وخت ته اړتيا لري، چې له دې سره به د پوهې ډيرې دروازې پرې خلاصې شي، د الله تعالی حمد، ثناء او شکر دی پر ځای کړي، چې د قران عظيم الشان د تلاوت توفيق يې ورکړ.**

**په لويو تفاسيرو کې ځينې اوږه بحثونه او تفصيلي ځايونه هم شته، خو په هغه کې ځان مه مصروفوه،**

**وصلی الله علي محمد واله وسلم اجمعين**
**اللهم الحقنا لما تحب و ترضی.**